# شریعت
ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦٨٧ ګڼه / چهارشنبه ۲۰ شعبان‌المعظم ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب لومړۍ ۱٤۰۳ هـ.ش / ۱۹ فبروري ۲۰۲۵ میلادي


## جلسه کابینه؛ بر تسریع انتقال انرژی برق به کشور تأکید شد



شانزدهمین جلسه کابینه به ریاست ملا محمد حسن آخند، رئیس‌الوزرای امارت اسلامی برگزار شد.

بربنیاد خبرنامه، در این جلسه به شرکت‌های امارتی وظیفه سپرده شده تا روند برق‌رسانی به کشور را سرعت بخشیده و در این راستا اقدامات لازم را انجام دهد.

در این جلسه به معاونیت اداری رئیس‌الوزرا نیز وظیفه سپرده شده تا با وزارت آب و انرژی و ریاست عمومی برشنا نشست برگزار کرده و استقامت‌های وظیفوی آنان را به‌گونه تفصیلی واضح سازد.

همچنان به وزارت اقتصاد ... ص۳

د اسلامي همکاریو سازمان:

## له افغانستان سره په تعامل کې د توپیري چلن پلوي نه یو



**شریعت:** د اسلامي همکاریو د سازمان مرستیال او ورته مهال په دغه سازمان کې د افغانستان لپاره ځانګړی استازی طارق بخیت د یو پلاوي په مشرۍ کابل ته راغلی او دلته یې د بهرنیو چارو له وزیر مولوي امیرخان متقي سره کتلي دي.

د بهرنیو چارو وزارت مطبوعاتي دفتر ویلي، په دې کتنه کې دواړو لورو د امنیت، تعلیم، له نشه یي توکو سره پر مبارزې، اقتصاد، بشري او پرمختیایي مرستو او په یاد سازمان کې د افغانستان اسلامي امارت د استازیتوب پر پیاوړتیا خبرې کړې دي.

د دغه وزارت ویاند ضیاء احمد تکل د طارق بخیت له ... ۳مخ

## دیدار سرپرست وزارت امور خارجه و سفیر ایران؛ در مورد تقویت روابط دوجانبه تأکید شد

محمد رضا بیکدلی، سفیر ایران مقیم کابل با مولوی امیرخان متقی، سرپرست وزارت امور خارجه دیدار کرد.

به گفته وزارت امور خارجه، در این دیدار در مورد تقویت روابط دوجانبه و گسترش همکاری‌ها در بخش‌های مختلف بحث و گفتگو صورت گرفته است.

در خبرنامه آمده که ایجاد سهولت در دادوستدهای تجارتی، ایجاد سهولت به تاجران و سرمایه‌گذاران افغانستان و ایران، گسترش دهلیزهای ترانزیتی ... ص۳



## د هېواد په لویو نظامي مرکزونو کې د ژباړې او تفسیر د لیدنې لړۍ پیل شوه

د افغانستان اسلامي امارت د کابینې له پرېکړې سره سم، د ارشاد، حج او اوقافو وزارت په سرپرستۍ د ټول هېواد په لویو نظامي مرکزونو کې د قرآن عظیم الشان د ژباړې او تفسیر دورې چې د ۱۴۴۶هـ ق کال د روانې شعبان المعظم میاشتې له لومړۍ نېټې څخه پیل شوې وې او د روژې مبارکې میاشتې تر ۲۵ نېټې پورې به دوام کوي.



د ارشاد، حج او اوقافو وزارت څخه د تشکیل شوي هیئت له لوري د هېواد په (۳۳۴) لویو نظامي مرکزونو کې د قرآن عظیم الشان د ترجمو او تفسیر دورو له جریان څخه د لېدنې او ارزونې په موخه یاد هیئت څلور دیرشو (۳٤) ولایتونو ته خپل سفر پیل کړی دی. د ټاکل شوي هیئت د سفر موخه ... ۳مخ

د کابل ښاروالي:

## د کثافاتو بیا کارونې لپاره له شرکتونو سره خبرې روانې دي

**شریعت:** کثافات په ښار کې نه یوازې ښکلا له منځه وړي، بلکې د طبیعي سرچینو بې‌ځایه مصرف ته هم لاره هواروي. د کثافاتو د مدیریت او بیا استعمال سیستم د چاپېریال ساتنې، اقتصادي پرمختګ او عامې روغتیا لپاره حیاتي ارزښت لري.




په دې برخه کې د پرمختللیو میتودونو پلي کول کولی شي د هوا، اوبو او ځمکې ککړتیا مخه ونیسي، د اقتصاد لپاره نوي فرصتونه رامنځته او د خلکو د ژوند کیفیت لوړ کړي.

په همدې خاطر کابل ښاروالي وايي چې د کثافاتو بیا استعمال لپاره یې له یو لړ شرکتونو سره خبرې روانې دي، چې پایلې ته له رسېدو سره به یې عملي چارې پیل شي.

د کابل ښاروالۍ استازی او سلاکار نعمت الله بارکزي امارتي ورځپاڼو ته ویلي چې د کثافاتو راټولولو برخه کې یاد ریاست منظم سیستم لري، چې تر ډېره نوی دی، خو نوي کولو ته لا اړتیا لري: موږ د کثافاتو راټولولو لپاره خپل ماشینري او تنظیفي کارګران لرو، چې په ... ۳مخ

## سرمقاله



## د یهودي اسیرانو له خولې د مجاهدینو د رښتینولۍ شهادت!

له تېرو څو ورځو راهیسې چې د حماس او اسرائیلو ترمنځ د اسیرانو په تبادله کې څو تنه نارینه او ښځینه یهودي اسیران آزاد شوي، زیاترو یې د حماس مجاهدینو د صداقت، حقانیت، غوره اخلاقو او خورا ښه چلن په هکله انتهايي جالبې څرګندونې کړې. تردې چې که د نړۍ په ګوټ ګوټ کې د هر قوم او هر مذهب والا یو منصف او د سلیم عقل خاوند یې د زړه په غوږو واوري او ویې څېړي، پرته له شکه چې هم به د اسلام د سپېڅلي دین پر کمال، جمال او لوړتیا اعتراف کوي او هم به د زړه له تله ومني چې د حماس د مجاهدینو په شمول د اسلامي امت په لروبر کې چې هر څومره مجاهدین، مبارزین او داعیان د الله تعالی په لار کې په هڅه هاند بوخت او د سرو مال قربانۍ ورکوي، زندانونه ګالي او په خپله خوښه شهادتونه غواړي یقیناً چې ټول رښتیني خلک او د زړه له تله د الله عزوجل په رضا پسې روان دي. تاسې وګورئ هغه یهودي عسکر چې هم خپلو کورنیو کې له ماشومتوبه د عربي مسلمانانو په دښمنۍ کې روزل شوي او هم پوځي لیکو کې له مسلمانانو سره د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې سرسختې دښمنۍ او جګړې ته چمتو شوي، اوس څرنګه د هماغو مجاهدینو د حقانیت او صداقت نارې وهي او وايي چې ارمان د هغوی ترڅنګ د اوسېدلو او د یو مجاهد په توګه پاتېدلو موقع ورته چمتو شوې وای. په تېره بیا د هغې یهودۍ اسیرې بیانونه بیخي د حیرانۍ وړ دي چې وايي نومورې د ښکلا ملکه ګڼل کېدله او له همدې وجهې پوځي لیکو کې د دښمن له منځه د حال احوال راوړلو لپاره غوره کړای شوه، خو د اسارت پر مهال یې که هر څومره هڅه وکړه او خپل هر ډول پلانونه یې وکارول، د حماس د مخلصو مجاهدینو پام یې را جلب نه کړای شو، تردې چې ان خپل ځینې غړي یې ورته لوڅ، خپله ښکلا یې ورڅرګنده او ستونه یې هم ورته وکړل، خو هغوی به سترګې نه ور اړولې او ټینګار به یې کاوه، چې اسلامي دین مسلمانانوته له ... ۳مخ

## د غزني له روغتیا ریاست سره د درملو او نورو توکو مرسته وشوه




د غزني ولایت د عامې روغتیا ریاست مسئولین وايي، چې د دغه ولایت له ۲۵ روغتیايي مرکزونو سره د ۳۵ قلمه د طبي او غیرطبي وسایلو مرسته وشوه.

سرچینې ویلي، چې د جک موسسې په مالي ملاتړ د ٦۵ زره امریکایي ډالرو په لګښت د یاد ولایت د مرکز او ولسوالیو په ګډون له ۲۵ روغتیايي مرکزونو سره د ۳۵ ډوله بېلابېلو طبي او ۱۰ نورو غیر طبي وسایلو مرسته شوې ده. سرچینې زیاته کړې، چې اوسمهال په دغه ولایت کې ۱۰۹ روغتیايي مرکزونه د یادې موسسې د روغتیايي خدمتونو تړونښ لاندې دي او هڅه کوي، چې په راتلونکې کې له روغتیايي مرکزونو څخه د اړتیا وړ نور وسایل وپېري.

د جهادي ارزښتونو د ساتنې د اړتیا او اغېزو په اړه تحلیلي څېړنه ۲مخ

د اسلامي نظام د خادمانو لپاره د راز ساتنه ډېره ضروري ده ۲مخ

## حیرتان ګمرک کې موټرو ته تمځای جوړ شو

د بلخ ولایت حیرتان ګمرک کې د ۵۰ میلیونه افغانیو په لګښت پر ۱۵ جریبه ځمکه د موټرو لپاره معیاري تم ځای جوړ او ګټې اخیستو ته وسپارل شو. د بلخ ولایتي چارواکي وايي، له دې تمځای ... ۳مخ



## کابل کې ۲ تنه د انسان تښتوونکو له منګولو آزاد شول

د کورنیو چارو وزارت امنیتي ځواکونو د کابل ښار اوومې امنیتي حوزې اړوند سیمه کې د یو لړ کشفي عملیاتو په ترڅ کې دوه تنه د انسان تښتونکو له منګولو ازاد کړي دي.



د یاد وزارت ویاند مفتي عبدالمتین قانع په خپله ایکس پاڼه ویلي، چې دغه دوه تنه تښتول شوي کسان د یوې شپېرکسیزې ډلې له منګولو ژغورل شوي دي.

ښاغلي قانع زیاته کړې، چې دغه دوه تنه تښتول شوي کسان د پروان ولایت اوسېدونکي دي او څه موده وړاندې په ایران کې تښتول شوي وو، چې د خلاصون په موخه یې له کورنۍ څخه ۱۵۰ زره ډالر غوښتل کېدل. د یادونې وړ ده، چې د یاد وزارت امنیتي ځواکونو له دې وړاندې هم په بېلابېلو ولایتونو کې یو شمېر ماشومان د انسان تښتونکو له منګولو ژغورلي دي.

# د جهادي ارزښتونو د ساتنې د اړتیا او اغېزو په اړه تحلیلي څېړنه

**محمد قاسم عزام**

د جهادي ارزښتونو د ساتنې او پالنې لپاره د يو ځانګړي رياست رامنځته کېدل د اسلامي امارت لپاره يوه مهمه چاره ده، چې د تاريخ، فرهنګ او ټولنيزو اصولو پر بنسټ ولاړه ده. جهاد يوازې نظامي مبارزه نه ده، بلکې دا د ارزښتونو، اخلاقو او ټولنيزو اصلاحاتو يوه دوامداره هڅه ده، چې د عدالت، عزت او حق د ټينګښت لپاره ترسره کېږي. د دې ارزښتونو ساتنه د تېرو قربانيو د يادښت تر څنګ د راتلونکي نسل د فکري، فرهنګي او اخلاقي ساتنې لپاره يوه مهمه اړتيا هم ده.

د جهادي ارزښتونو د ساتنې لپاره د رسمي ادارې جوړول نه يوازې تاريخي اهميت لري، بلکې د فکري، فرهنګي او ملي هويت د ساتنې لپاره هم اړينه اړتيا ده. جهادي تاريخ د تېر وخت يادونو تر څنګ د قربانيو، مبارزو او ديني مسئوليتونو يوه متحرکه سلسله ده، چې بايد د راتلونکو نسلونو لپاره په مستند، واضح، او تحريف نه منونکي شکل وساتل شي. د دې لپاره چې جهادي اسناد، د شهيدانو ژوند ليکونه، د غازيانو خاطرات او د هغوی سترې قرباني هېرې نه شي، يوه رسمي اداره بايد د دې ټولو توکو راټولول، تنظيم او مستند کولو ته ځانګړې پاملرنه وکړي. که دا کار په علمي معيارونو او د تاريخي اسنادو د راټولولو له اصولو سره سم ترسره شي، نو دا به يقيني کړي چې جهادي ارزښتونه نه يوازې د وخت له تېرېدو سره ضايع کېږي نه، بلکې له هر ډول تحريف، سياسي تعبير او ناسم روايت څخه خوندي پاتې کېږي.

د تاريخ په اوږدو کې، جګړې او مبارزې تل د فکري او فرهنګي تحريف ښکار شوې او که د جهاد تاريخي ارزښتونه، د مجاهدينو حماسي قربانۍ او د دوی اصلي موخې په سمه توګه ونه ساتل شي، نو راتلونکي نسلونه به د ناسم تعبير ښکار شي، چې دا به د ارزښتونو د زوال لامل وګرځي. همداراز، د يو رسمي ارشيف جوړول، چې په کې د جهادي مشرتابه ويناوې، مهم تاريخي اسناد، د جهاد مرحلې او د ديني مبارزو اساسي اصول خوندي شي، کولی شي دا ارزښتونه د نړيوالو معيارونو مطابق ثبت او وساتي.

د دې ادارې د فعاليتونو يوه مهمه پايله دا ده، چې د جهادي ارزښتونو اړوند ناسم تبليغات، تحريفي هڅې او د فکري يرغل هره بڼه به بې‌اغېزې شي. د دې تر څنګ، که د دې ادارې له لارې د جهادي قربانيو د ساتنې يوه منظمه ستراتېژي جوړه شي، نو نه يوازې د قربانيو ياد به ژوندی پاتې شي، بلکې دا به د امت د يووالي، فکري ځواکمنتيا او اسلامي ارزښتونو د خپراوي سبب هم وګرځي.

د همدې اړتيا له مخې، دا اداره بايد د تاريخي شواهدو راټولولو، مستند کولو او د هغوی د خپرولو لپاره يوه پراخه علمي تګلاره ولري، چې له مخې يې د جهادي ارزښتونو ساتنه د راتلونکي نسل لپاره په يو خوندي او نه بدلېدونکي ډول ممکنه شي.

دويم، د جهادي ارزښتونو ساتنه بايد د ټولنې په فکري، تعليمي او فرهنګي جوړښت کې ژور انعکاس ولري، څو دا مفاهيم د نسلونو ترمنځ ژوندي پاتې شي. که چېرې دا ارزښتونه يوازې د موزيمونو، يادګارونو او کتابونو له بريده محدود شي، نو دا به يوازې د تاريخ يوه برخه وګرځي، نه د ژوند تګلاره. له همدې امله، د تعليمي نصاب برخه ګرځېدل، د فرهنګي او اکاډميکو بحثونو له لارې عامېدل، او د ټولنيزو اصولو په بڼه تطبيقېدل يې مهم اړخونه دي. د ښوونځيو، پوهنتونونو او علمي مراکزو له لارې د جهادي فکر ترويج دا يقيني کوي چې راتلونکي نسلونه به دا ارزښتونه نه يوازې زده کړي، بلکې د خپلو عملي ژوند برخه به يې وګرځوي. د اسلامي شريعت او عدل پر بنسټ د ټولنيز عدالت رامنځته کول، د اسلامي اقتصاد اصولو ته وده ورکول او د اخلاقي ارزښتونو پراخول د جهادي تفکر هغه اساسي عناصر دي، چې نه يوازې د امت يووالي ته لاره هواروي، بلکې د اسلامي ټولنې د پرمختګ، ثبات او پايدارۍ ودې لپاره هم مهم رول لري. دا ارزښتونه بايد د ټولنيزو حرکتونو، فرهنګي او رسنيزو برنامو، د مشرانو ويناوو او د معاصر سياست او اقتصاد په چوکاټ کې عملي بڼه واخلي، څو د يوې ځواکمنې اسلامي ټولنې د جوړولو سبب شي. درېيم، د جهادي ارزښتونو د ساتنې پروسه بايد د معاصرې نړۍ اړتياوو ته ځواب ووايي، څو دا ارزښتونه يوازې د ماضي يادونه پاتې نه شي، بلکې د راتلونکو نسلونو فکري او عملي ژوند ته داخل شي. که چېرې دا ارزښتونه يوازې په دوديزه بڼه وساتل شي، نو نوی نسل به ورسره لږ اشنا وي او اغېز به يې محدود پاتې شي. د دې لپاره اړينه ده چې عصري ټکنالوژي وکارول شي، د ډيجټلي ارشيفونو، ويډيويي مستنداتو او آنلاين علمي منابعو له لارې دا ارزښتونه خوندي او عام شي. د جهادي مفاهيمو د بيان طريقه بايد د معاصر نسل له فکري درک سره سمه تنظيم شي، څو هغوی دا ارزښتونه د اسلامي تمدن د يوه مهم عنصر په توګه ومني. د ټولنيزو رسنيو، تعليمي اپليکيشنونو او مجازي تعليمي پليټفارمونو له لارې د جهادي فکر عامول دا يقيني کولی شي چې دا ارزښتونه نه يوازې د تاريخ يوه برخه پاتې شي، بلکې د راتلونکي نسل فکري هويت ته وده ورکړي. د نړيوالو معيارونو مطابق د جهادي تفکر تنظيم، د مستندو منابعو تدوين او د نړيوالو اکاډميکو معيارونو سره سمې څېړنې کولای شي چې د جهادي ارزښتونو پر موضوع بېلابېل تحريفونه، ناسم تعبيرونه او دښمنانه تبليغات خنثی کړي او يو روښانه فکري چوکاټ وړاندې کړي. څلورم، د جهادي ارزښتونو ساتنه د داخلي اړتيا تر څنګ نړيوال اهميت هم لري، ځکه چې د معاصرې نړۍ د تبليغاتي جګړې له امله، جهاد ته د تاوتريخوالي، سخت دريځۍ او شخړې د وسيلې په توګه کتل کېږي، چې دا يو ناسم تعبير دی. د دې ادارې له لارې بايد جهادي ارزښتونه د سوله ييز اسلامي فکر، عدل او ټولنيزو اصلاحاتو د يوې برخې په توګه معرفي شي، څو نړيوال تفاهم رامنځته شي او د غلطو تعبيرونو مخه ونيول شي. د نړيوالو ژبو له لارې د مستندو علمي موادو چمتو کول، د نړيوالو کنفرانسونو، رسنيزو مناظرو او اکاډميکو مقالو له لارې د حقيقي جهادي مفهوم توضيح او د هغو تبليغاتو خنثی کول چې جهاد ته منفي بڼه ورکوي، اساسي اقدامات دي. همداراز، د اسلامي تاريخ او معاصر جهادي تجربو مستند کول، د نړيوالو اصولو پر بنسټ د جهاد او مشروع مقاومت توضيح او د اسلامي ارزښتونو د سوله ييزو، عدالت محوره او انساني اړخونو روښانه کول به دا يقيني کړي چې جهادي تفکر د امت د عزت، استقلال او اصلاح يوه مشروع وسيله ده، نه د تشدد او بې ثباتۍ لامل.

پنځم، د جهادي ارزښتونو ساتنه يوازې د دولت مسئوليت نه دی، بلکې دا د ټولنې د هر قشر دنده ده. که چېرې دا ارزښتونه يوازې د دولت په چوکاټ کې محدود پاتې شي، نو د ټولنې د عامو خلکو د ګډون فرصت کمېږي. اړتيا ده چې د علماوو، ليکوالانو او د ټولنې د بېلابېلو برخو ونډه يقيني شي، تر څو دا ارزښتونه په ټولنه کې ژوندي پاتې شي.

د جهادي ارزښتونو د ساتنې رياست بايد يوازې په يو رسمي جوکاټ کې محدود پاتې نه شي، بلکې دا بايد د يو فکري، فرهنګي او عملي حرکت په توګه وده وکړي. د دې ارزښتونو ساتنه د تېرو قربانيو درناوی دی او د راتلونکي نسل د فکري هويت، اخلاقي ارزښتونو او ټولنيزې ښېرازۍ د بقا لپاره يوه مهمه وسيله ده.

# د اسلامي نظام د خادمانو لپاره د راز ساتنه ډېره ضروري ده

**قاري ساجد تکل**

هغه څوک چې د مسلمانانو ټولنيز خدمت کوي او يا د اسلامي نظام د چتر لاندې په يوه اداره، آمريت او مديريت کې شغل او مصروفيت لري، مهمه ده چې راز وساتي او بهر د نظام نور خلک د نظام په بعض مهمو لاسته راوړنو، مهمو پرمختګونو سياسي او نظامي پرمختګ او همدا شان په جوړ شويو وسائلو مهماتو او ابتکاراتو خلک خبر نه کړي.

کله چې له دې څخه مهم رازونه وسپړل شي، بيا په ټولنيز خدمت کې نه شي کامیابېدلی او نه کومه نتيجه دده په خدمت مرتبه ده.

علامه طرطوشي (رحمه الله) ليکلي دي: [ اعلم أن كتمان السر من الخصال المحمودة في جميع الخلق، ومن اللوازم في حقوق الملوك، ومن الفرائض الواجبة على الوزراء وجلساء الملوك والأتباع.] سراج الملوك جـ ۲ صـ ۴۱۴ الباب الثالث والثلاثون في كتمان السر.

ژباړه: يوه شه چې د راز پټول په ټولو خلکو کې د نيکو خلکو خوی دی او په حقوقو د بادشاهانو کې د لوازمو څخه دی، د وزيرانو او بادشاهانو سره د کيناستونکو او د دوی په ټولو تعبيدارانو باندې د فرائضو ثابتونه ده.

هدف او مقصد د دې دادی چې؛ کوم خلک چې د مشرانو سره ناسته پاسته کوي، د نظام له هرې وړې او غټې کيسې، مهمې موضوع او مهمو معلوماتو خبرېږي، په دوی د راز ساتنه له فرائضو، لازماتو او واجباتو څخه ده چې پټ به راز ساتي.

کوم خلک چې په داخل د نظام کې دنده ترسره کوي، له وړې او غټې موضوع چې راز ساتنې پورې تړلې وي، لازمه ده چې دغه راز پټ وساتي او بهر، باندې، مډيا او رسنيزه يې نه کړي؛ که يې وپاشله، رسنيزه يې کړه او راز يې افشاء کړ، دغه سړي له نظام سره، مشرانو سره، ټولنې سره او هيواد سره خيانت وکړ.

د دې جرم، خيانت او راز افشاء کولو سزا داده چې: د راز افشاء کول د ژبې د آفتونو او مصائبو له جملې څخه دي چې شريعت کې ناروا ګرځول شوی او د جهنم د ننوتلو د اسبابو د سببونو څخه يو سبب شمېرل شوی دی. حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه فرمايي: قلت: يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! وإنا لنؤاخذ بما نتكلم به؟ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ( ثكلتك أمك معاذ، وهل يكب الناس على مناخرهم إلا حصائد ألسنتهم.) مسند الإمام أحمد جـ ۵ صـ ۲۳۷ مه.

ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه، چې ای د الله جل جلاله رسوله ايا موږ سره به د خپلو کړو وړو او ويناوو محاسبه کېږي؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ايا داسې خلک د خپلو کړو وړو، اقوالو او افعالو په واسطه جهنم ته پړمخې نه غورځول کېږي؟ کله چې د راز افشاء کول او د ژبې نور آفتونه د دوزخ د داخليدلو سبب ګرځي، نو برعکس د راز پټول بيا جنت ته د داخلېدلو سبب ګرځي، ځکه نو کتمان دې ته وايي چې ژبه د رازونو د بيانولو څخه بنده وساتل شي او د ژبې د خوندي ساتلو باره کې رسول الله مبارک داسې فرمايي: ( من يضمن لي مابين لحييه ومابين رجليه أضمن له الجنة.) صحيح البخاري جـ ۲ صـ ۹۵۹ كتاب الرقائق باب حفظ اللسان.

ژباړه: څوک چې ماته د ژبې او شرمګاه د سم استعمال او سالمې ساتنې ضمانت راکړي، زه به هغوی ته د جنت د داخليدلو ضمانت ورکړم، نو ځکه خو راز پټ ساتل هم د چپ کيدلو په ضمن کې شمېرل کېږي چې شريعت مسلمانانو ته د هغې د خپلولو امر کړی او دغه د ايمان نښه هم ده.

بل ځای کې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: ( من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فليقل خيراً أو ليصمت.) صحيح البخاري جـ۲ صـ ۹۵۹ كتاب الرقائق باب حفظ اللسان.

ژباړه: څوک چې په الله تبارک وتعالیٰ ايمان لري او د قيامت په ورځ ايمان لري هغوی دې يا د خير خبرې کوي او يا دې «چُپ» کېني. مقصد دادی چې؛ يا دې د خير خبرې کوي، د اصلاح او ښېګڼې خبرې دې کوي، که دا نشي کولی چُپ دې شي، بدې خبرې، ښکنځلې تهمتونه، غيبت او راز دې نه افشاء کوي.

په دې کې شک نشته دی چې د چا په مخ کې د راز خبره وشوه او يا کوم چاته د راز موضوع خبره او کيسه ورسېده، نو دغه خبره له همدې شخص سره أمانت شوه، چې د دې خبرې خيال ساتل مهم دي، بل چاته به يې نه کوي. په دې باره کې رسول الله صلى الله عليه وسلم داسې فرمايلي دي: ( إنما يتجالس المتجالسان با لأمانة، فلايحل لأحدها أن يفشى على صاحبه مايكره.) شعب الإيمان جـ ۷ صـ ۵۲۰ مه فصل في جفظ المسلم.

ژباړه: دوه کسان چې په يو مجلس کې سره يوځای کېږي نو د هغوی هره خبره د بل سره أمانت ده، په دواړو کې يوه ته هم روا نه ده چې د خپل ملګري خبره داسې بل چاته وکړي چې هغه يې بده ګڼي، نو د راز افشاء کول په شريعت کې خيانت ګڼل کېږي او خيانت کول حرام عمل دی. الله عزوجل فرمايي: { يا أيهاالذين آمنو لاتخونوا الله والرسول وتخونو أماناتكم وأنتم تعلمون.} سورة أنفال ۲۷ آيت.

ترجمه: ای مؤمنانو د ايمان خاوندانو! مه کوئ خيانت له الله جل جلاله سره او مه کوئ خيانت د الله جل جلاله د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره او مه کوئ خيانت تاسو په أمانتونو کې، حال داچې تاسو پوهېږئ.

علامه سفاريني رحمه الله ويلي: په هر عاقل بالغ د راز ښکاره کول حرام دي، البته هغه وخت چې په راز پوهونکي ته د راز د ساتنې أمر شوی وي.

کله چې له يوه سړي کارمند او مسؤل څخه د نظام، حکومت او صف راز افشاء او ښکاره شي؛ کوم نقصانات لري!



کله چې د نظام کس، مامور، آمر او هر فرد څخه بې مصلحته عامو خلکو ته راز ښکاره شي نو په دې کې ډېر نقصانات دي. علامه ماوردي رحمه الله ليکي: ( قال بعض البلغاء: إذوقفتِ الرعية على أسرار الملوك هان عليها أمرها.) تسهيل النظر وتعجيل الظفر صـ ۹۷ مه.

ژباړه : بعضې بلغاو ويلي دي: کله چې رعيت په رازونو د بادشاه او يا نظام خبر شي نو په دوی بيا د بادشاه او نظام کار حقير او سپک شي، د بادشاهانو او نظام او د دوی تر منځ بيا د عظمت پټۍ او رسۍ څيرې شي او او د رعيت په زړونو کې د نظام رعب ختم شي.

علامه ابن طقطقي رحمه الله ليکلي دي: ( فكم من مملكةٍ خربت، وكم من نفسٍ تلفت بسبب ظهور سرواحد.) الفخري فی لآداب السلطانية صـ ۶۶، الفصل الأول في الأًحكام السلطانية.

ژباړه: د يو راز د ښکاره کولو له وجې ډېر نظامونه، دولتونه او حکمتونه نړېدلي او خراب شوي دي؛ همداشان د راز د ښکاره کولو په سبب ډېر خلک هلاک شوي دي.

دا خبره معلومه ده چې؛ د راز او سر ساتنه د حکومت او نظام د بقاء او دوام سبب ګرځي.

کله چې حاکم، مامور او آمر راز وساتي، دغه خلک بيا خپل نظام او حکومت هم ساتلی شي.

د دولت مشر ابو مسلم څخه يو تن وپوښتل چې په کوم شي دې حکومت حاصل کړ؟ هغه ورته وويل: چې زه د خپل راز په پټ ساتلو سره عادت شوی وم، زيات احتياط او لوی صبر مې تل کولو نو مې حکومت حاصل او تر لاسه کړ.

د کاتب، مامور، آمر او هر هغه څوک چې نظام کې کار کوي دوی بايد لومړی د راز ساتونکي جوړ شي.

نن سبا چې د آدابو لحاظ نه ساتل کېږي، خپګان او بې اعتمادي زياتېږي، د يوه کار په اقدام کې مخکې له مخکې خلک خبر وي؛ ستونزه داده چې مخالفينو ته راز ښکاره شوی وي.

مخالفين چې د راز څخه خبر شوي وي، هغوی بيا د مسلمانانو پر خلاف سازشونه جوړ کړي وي، نو فلهذا د ادارې مسؤلين او په کل کې ټول کارمندان بايد او بايد د راز ساتونکي وي.

اوس که موږ تاسو غواړو چې حکومت، نظام او مديريت مو دوام وکړي بايد رازونه ښکاره نه کړو. مهم موضوعات د مډيا په پرده نشر نه کړو مهمې لاسته راوړنې د خلکو مجالسو کې يادې نه کړو او تل په راز کې دقيق او متوجې اوسو...

# افغان اعلانات

### اعلان دعوت به داوطلبی

کابل برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی( تهیه و تدارک کمپیوتر لپتاپ و دسکتاپ ضرورت واحد های دومی کابل برشنا ) دارای کود نمبر( کابل برشنا -۱۴۰۳-داوطلبی باز ملی داخلی- اجناس- ۲۶ ) اشتراک نموده و نقل شرطنامه را به شکل سافت در حافظه یا فلش دسک از مدیریت قرارداد های کابل برشنا بدست آورده ،آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشراعلان الی ۱۴۰۳/۱۲/۲۲ ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر به ریاست کابل برشنا واقع چمن حضوری شهر کابل ارایه نمایند آفرهای ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پذیرش نمیباشد.

۱- تضمین آفر : مبلغ ۳۷،۰۰۰ سی و هفت هزار افغانی

۲ - توانایی مالی: ۲۲۶،۰۰۰ دوصدو بیست و شش هزار افغانی

۳- آفر گشایی: جلسه آفر گشایی روز چهارشنبه ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر مورخ ۱۴۰۳/۱۲/۲۲ برگزار میگردد.

٤ - آدرس و محل آفر گشایی : منزل اول صالون مدیریت قرارداد های کابل برشنا.

آدرس اداره : کابل برشنا چمن حضوری ناحیه هشتم کابل افغانستان

برای معلومات بیشتر به شماره ذیل تماس گیرید.

شماره تماس: ۰۷۲۸٦٤۸۰۳۵

آدرس الکترونیکی : hekmat.ranjbar@kbd.dabs.af

***

### اعلان دعوت به داوطلبی

کابل برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی( تهیه و تدارک ٥ قلم تجهیزات برقی ضرورت مدیریت خیرخانه کابل برشنا ) دارای کود نمبر( کابل برشنا -۱۴۰۳-داوطلبی باز ملی داخلی- اجناس- ۲۸ ) اشتراک نموده و نقل شرطنامه را به شکل سافت در حافظه یا فلش دسک از مدیریت قرارداد های کابل برشنا بدست آورده ،آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشراعلان الی ۱۴۰۳/۱۲/۲۳ ساعت ۹:۳۰ قبل از ظهر به ریاست کابل برشنا واقع چمن حضوری شهر کابل ارایه نمایند آفرهای ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پذیرش نمیباشد .

۱- تضمین آفر : مبلغ ۲٦،۰۰۰ بیست و شش هزار افغانی

۲ - توانایی مالی: ۱٦۰،۰۰۰ یک صدو شصت هزار افغانی

۳- آفر گشایی: جلسه آفر گشایی روز پنج شنبه ساعت ۹:۳۰ قبل از ظهر مورخ ۱۴۰۳/۱۲/۲۳ برگزار میگردد.

٤ - آدرس و محل آفر گشایی : منزل اول صالون مدیریت قرارداد های کابل برشنا.

٥ - آدرس اداره : کابل برشنا چمن حضوری ناحیه هشتم کابل افغانستان

برای معلومات بیشتر به شماره ذیل تماس گیرید.

شماره تماس: ۰۷۲۸٦٤۸۰۳۵

آدرس الکترونیکی : hekmat.ranjbar@kbd.dabs.af

***

### اعلان دعوت به داوطلبی

کابل برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی( تهیه و تدارک ۱۸ قلم پرزه جات وسایط ضرورت مدیریت ورکشاپ کابل برشنا ) دارای کود نمبر( کابل برشنا -۱۴۰۳-داوطلبی باز ملی داخلی- اجناس- ۲۷ ) اشتراک نموده و نقل شرطنامه را به شکل سافت در حافظه یا فلش دسک از مدیریت قرارداد های کابل برشنا بدست آورده ،آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشراعلان الی ۱۴۰۳/۱۲/۲۳ ساعت ۹:۳۰ قبل از ظهر به ریاست کابل برشنا واقع چمن حضوری شهر کابل ارایه نمایند آفرهای ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پذیرش نمیباشد .

تضمین آفر : مبلغ ٤۹،۰۰۰ چهل و نه هزار افغانی توانایی مالی: ۲۹٥،۰۰۰ دوصدو نودو پنج هزار افغانی آفر گشایی: جلسه آفر گشایی روز پنج شنبه ساعت ۹:۳۰ قبل از ظهر مورخ ۱۴۰۳/۱۲/۲۳ برگزار میگردد. آدرس و محل آفر گشایی : منزل اول صالون مدیریت قرارداد های کابل برشنا. آدرس اداره : کابل برشنا چمن حضوری ناحیه هشتم کابل افغانستان برای معلومات بیشتر به شماره ذیل تماس گیرید. شماره تماس: ۰۷۲۸٦٤۸۰۳۵

آدرس الکترونیکی : hekmat.ranjbar@kbd.dabs.af

***

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت غندی غازیان لمتید یک عراده موتر پلیت ۳۵۱۷۲-۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای محمد نظیر فرزند محمد وکیل بفروش رسانیده است. بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند.۹۳۴۷

***

### دعوت به داوطلبی

وزارت مالیه امارت اسلامی افغانستان ازتمام داوطلبان واجد شرایط دعوت مینماید تادر داوطلبی پروژهٔ(تهیه و تدارک ۲٥ عراده موتر سایکل برای گمرک ها) دارای نمبرتشخیصیه MOF/1403/NCB/G-1126 که به روش داوطلبی باز صورت میگیرد اشتراک نموده و شرطنامه را به لسان دری و پشتو از آدرس ذیل مطابق شرایط شرطنامه ، قانون و طرزالعمل تدارکات عامه اجراء میگردد بدست آرند. تاریخ مشخص جلسه قبل از داوطلبی: تاریخ ۱۱/حوت/۱۴۰۳ ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر میباشد. تاریخ مشخص آفرگشایی: تاریخ ۲۲/حوت/۱۴۰۳ ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر میباشد. تضمین آفر : به مبلغ ٤٥،٥۰۰ (چهل پنج هزار و پنجصد) افغانی میباشد. آدرس: سایت رسمی اداره تدارکات ملی، ریاست محترم عمومی اداره امور ا.ا.ا

شماره تماس دفتر: ۰۲۰۲۹۲٤۱٥٦

آفرهای دیر رسیده و انترنتی پذیرفته نمیشود.

***

### دعوت به داوطلبی

وزارت مالیه امارت اسلامی افغانستان ازتمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در داوطلبی پروژهٔ(ترمیم (۹) پایه جنراتور گمرک ولایت ننگرهار) دارای نمبرتشخیصیه (MOF/1403/NCB/G-1127) که به روش داوطلبی باز صورت میگیرد اشتراک نموده و شرطنامه را به لسان دری و پشتو از آدرس ذیل مطابق شرایط شرطنامه ، قانون و طرزالعمل تدارکات عامه اجراء میگردد بدست آرند. تاریخ مشخص جلسه قبل از داوطلبی: تاریخ ۱۲/حوت/۱۴۰۳ ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر میباشد. تاریخ مشخص آفرگشایی: تاریخ ۲۳/حوت/۱۴۰۳ ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر میباشد. تضمین آفر : به مبلغ ۹۸,۰۰۰ (نود هشت هزار) افغانی میباشد. آدرس: سایت رسمی اداره تدارکات ملی، ریاست محترم عمومی اداره امور ا.ا.ا

شماره تماس دفتر: ۰۲۰۲۹۲٤۱٥٦

آفرهای دیر رسیده و انترنتی پذیرفته نمیشود.

## بر تسریع انتقال انرژی ...

وظیفه سپرده شد تا در راستای تطبیق پروژه‌های انکشافی با ادارات ذیربط هماهنگی و هزینه‌های آن را بموقع تعقیب کند. جلسات کابینه به هدف تصمیم‌گیری در امور حکومتداری، وزارت‌خانه‌ها و موضوعات بزرگ به سطح ملی به‌گونه منظم برگزار می‌شود.

## در مورد تقویت روابط دوجانبه ...

و بهبود بنیادین روابط دو کشور گفتگو شده است. دو طرف بر افزایش همکاری در بخش‌های صحت و زراعت و تبادله تجارب تأکید کرده‌اند. این در حالی است که روابط میان افغانستان و ایران در بیش از سه سال گذشته روز به روز در حال گسترش بوده است.

## د هېواد په لویو نظامي مرکزونو کې ...

په نظامي مرکزونو کې د قرآن کریم د زیاړه او تفسیر دورو له جریان څخه ارزونه ده، ترڅو په دغو نظامي مرکزونو کې له مهال وېش سره سم د تدریس بهیر له نږدې وګوري او وڅاري، د ګډون کوونکو ستونزې او غوښتنې واوري او ورته حل لارې پیداکړي. همدارنګه دغه وزارت هڅه کوي چې په راتلونکي کلونو کې دغه لړۍ لا پراخه کړي.

## حیرتان ګمرک کې موټرو ...

سره به د سوداګرو ستونزې په بنسټیزه توګه حل شي. د مالیې وزارت د ګمرکونو لوی ریاست د پروژو د څارنې مسئول عصمت الله جلالزي ویلي، چې یاد تمځای د مالیې وزارت له بودجې د او میاشتو په موده کې جوړ او ګټې اخیستو ته وسپارل شو.

## پالیسی جدید ملی صحی ...

مورد جلوگیری خواهد نمود، به مشکلات صحی فعلی جامعه پاسخ خواهد داد. در خبرنامه به نقل از سفیر جاپان آمده که از هماهنگی‌های بیشتر در بخش صحت ابراز خرسندی کرده است. تاکایوشی کورمایا از همکاری جاپان با افغانستان در بخش صحت اطمینان داده است. گفتنی‌است که وزارت صحت عامه معیاری‌سازی خدمات و خودکفایی سکتور صحت کشور را در دستور کار قرار داده است.

## کندز ښار او شېرخان بندر ترمنځ ...

عبدالباري عمر د یادې پروژې د پرانیستې مراسمو کې ویلي، چې د یادې پروژې چارې د یوې میاشتې په موده کې بشپړې شوې او د یادو مزو په ښنلولو سره به د یاد ولایت اوسېدونکو ته ۹٥ میګا واټه برښنا برابره او په کلني ډول به ترې ۱۴۷ میلیونه افغانۍ عواید ترلاسه شي.

# امیدها برای به بهره برداری سپردن دهلیز واخان

نوری

افغانستان ظرفیت های خوبی برای تجارت و سرمایه گذاری کشورهای جهان و منطقه دارد. از جمله این کشورها چین است که با افغانستان روابط تجارتی خوبی دارد و همچنان در بخش نفت و گاز و دیگر معادن مانند مس عینک لوگر میلیاردها دالر سرمایه گذاری کرده است. چرا کشورهایی دیگر به این پیمانه سرمایه گذاری نه کرده اند؟ این سوالی است که میتوان به سادگی به آن پاسخ داد. با فرو پاشی نظام سابق و شکست امریکا و ناتو در افغانستان و استقرار امارت اسلامی کشور های بودند که از امریکا و غرب تبعیت کردند؛ اما امارت اسلامی گام های مثبت در راستای تحکیم روابط سیاسی، تجارتی و فرهنگی با کشورهای همسایه بلند کرد، که امروز ما شاهد آن هستیم. چین، قطر، ایران، ازبیکستان، ترکمنستان، قزاقستان کشورهایی هستند که روابط خودرا با امارت اسلامی که سیاست بیطرفی و عدم عضویت در بلوک های نظامی را به پیش می برد مستحکم ساخته اند. امروز تجارت ما با کشور چین از طریق خط آهن، جاده موتر رو و دهلیز هوایی صورت میگیرد. مسئولین دو کشور در زمینه ساختن دهلیز واخان که یک مسیر خوبی برای تجارت است صحبت کرده اند و به یک سلسله توافقات هم دست یافته اند. امید های مردم ما به بهره برداری سپردن دهلیز واخان زیاد شده است .کشور چین بدون در نظر گرفتن شرایط و اوضاع در کشور ما سرمایه گذاری کرده و با گذشت زمان میزان این سرمایه گذاری را افزایش داده است. سرمایه گذاری دریک کشور و رونق تجارت جرئت می خواهد. هرگاه ما جرئت نداشته باشیم و منتظر سرنوشت باشیم و این را در مخیله بپرورانیم که اوضاع چطور میشود؟ کار به جایي نمیرسد. چین، ایران، قطر، ازبیکستان، ترکمنستان و قزاقستان کشور های موفقی در زمینه تجارت با افغانستان هستند. تجارت این کشورها باافغانستان توسعه یافته است و ما آینده درخشانی را پیشبینی میکنیم؛ زیرا امارت اسلامی با متانت و با در نظر گرفتن منافع متقابل با این کشورها پیش میرود. ملا محمد عیسی ثانی، سرپرست وزارت فواید عامه ، در دیدار با ژاو شینگ، سفیر چین در کابل که چند روز قبل صورت گرفت، در مورد دهلیز واخان و پروژه افغان- ترانس بحث کردند. سرپرست وزارت فواید عامه به رسانه ها گفته که «سروی دهلیز واخان از سوی این وزارت انجام شده و کار بالای دیزاین آن جریان دارد». دو طرف، بر «ادامه همکاری و تداوم بحث‌ها در مورد دهلیز واخان و افغان- ترانس، تأکید کردند.» به نقل از خبرنامه رسیده وزارت فواید عامه به رسانه ها «در این دیدار، دو طرف همچنان، روی تداوم روابط تجارتی، اقتصادی، انتقالات اموال تجارتی، پروژه‌های زیربنایی میان چین و افغانستان و همکاری‌های دوجانبه نیز تأکید کردند». در های تجارتی کشور ما برای تمام کشورهای جهان باز است و در این زمینه هیچ مشکلی وجود ندارد. صلح و ثبات در کشور تأمین است، تجار افغان و کشورهایی که با افغانستان تجارت دارند بدون خوف و خطر مصروف نقل و انتقال کالاها و اموال شان هستند. در این روز ها ساختن دهلیز واخان در سرخط مطبوعات داخلی و خارجی قرار دارد، بعضی تحلیل ها می رساند که ساختن این راه خیلی دشوار است، که خوشبختانه امارت اسلامی کارهای سروی و دیزاین را طبق یک پلان جامع به پیش برده است و یک روز خواهد رسید که شاهد افتتاح دهلیز واخان باشیم؛ زیرا در این زمینه اراده وجود دارد. با به بهره برداری سپردن دهلیز واخان افغانستان طور مستقیم با کشور بزرگ چین که با اکثریت کشورهای جهان تجارت دارد وصل خواهیم شد. کشورهای مغرضی هم وجود دارد که حسرت دهلیز واخان را می خورد. افغانستان و چین با اراده قوی می خواهد که دهلیز واخان را به مرحله نهایی برساند. با این کار موقعیت اقتصادی افغانستان بیشتر می شود و تحریم های اقتصادی که کشور های مغرض علیه امارت اسلامی وضع کرده اند لرزان خواهد شد. بنابر یک احصائیه آزاد دهلیز یا کوریدور واخان یا پامیر در شمال شرق افغانستان از جمله ولسوالی های ولایت بدخشان میباشد که مرکز آن قریهٔ خاندود است. در شمال این منطقه کشور تاجیکستان، در جنوب پاکستان و در شرق جمهوری مردم چین موقعیت دارند. طول آن از اشکاشم تا سرحد چین ۳٥۰کیلومتر، عرض آن در نزدیکی اشکاشم ۱۸ کیلومتر، در شرق سرحد مشترک با چین ٦۰ کیلومتر و در وسط از قره بولق در سرحد تاجیکستان تا سرحد بروغیل در مرز با گلگیت-بالستان در کشمیر ۷۰کیلومتر است. جمعاً با ۱۴هزار کیلومتر مربع مساحت واخان بنام بام دنیا معروف است زیرا ارتفاع وسطی آن از سطح بحر ۴ هزار متر میباشد. نفوس ولسوالی واخان بیشتر از۱۷ هزار تن است. کوتل خنجیر در سرحد با چین ۴۹۰۰ متر ارتفاع دارد. ارتفاع واخان در نزدیکی اشکاشم ۳۳۰۰ متر است. یعنی شیب این دهلیز از شرق به غرب است که دریاهای آن بشمول دریای پامیر نیز در اشکاشم به دریای پنج سرازیر میگردند که بالآخره به دریای آمو وصل میشوند. هرچهار جناح این دهلیز را کوه های سر به فلک کشیده پامیر در شمال، تیان شان و همالیا در شرق، قراقروم در جنوب و هندوکش در غرب احاطه کرده اند. از همین جهت دهلیز واخان صرف در سه ماه تابستان از طریق یک سرک سنگلاخی قابل عبور و مرور بوده در متباقی نه ماه پوشیده از برف و با درجه حرارت متوسط منفی ۳۰ درجه سانتی گراد، بسیار سرد میباشد؛ اما پامیر بزرگ برف ندارد . باد بیشتر دارد که مانع ریزش برف می شود . دهلیز پامیر هموار است برف کوچ ندارد تنها پامیر کوچک نهایتاً تا نیم متر برف در فصل زمستان دارد. از نظر تاریخی دهلیز واخان یکی از شاخه های جنوبی راه ابریشم محسوب می گردید که چین را به آریانای باستان و هندوستان وصل می‌نمود. در قرن سیزدهم میلادی جهانگرد یونانی مارکوپولو از طریق دهلیز واخان به چین مسافرت نمود. همچنان در اواخر قرن نزدهم لارد کورزون وایسرای هند برطانوی نیز از این دهلیز عبور کرد. در حال حاضر به علت صعب العبور بودن راه، رسیدن به چین دشوار است؛ اما با تکمیل شدن دهلیز واخان افغانستان مستقیماً به کشور چین وصل خواهد شد. پیشرفت تجارت میان دو کشور منافع زیادی را به هردو طرف به همراه خواهد داشت. افغانستان که طی بیشتر از چهار دهه جنگ های تحمیلی و کشمش های داخلی صدمات زیادی به اقتصاد آن رسیده از طریق توسعه تجارت با کشورهای همسایه و منطقه خواهد توانست که اقتصاد خودرا بازسازی و تقویه کند.

## له افغانستان سره په تعامل کې د توپیري ...

قوله ویلي، چې له افغانستان سره په تعامل کې له لومړي سره د توپیري او سلیقوي چلن پلوي نه کوي او د واقعیتونو موندلو او انعکاس پر تګلاره باور لري. د طارق بخیت په وینا، افغانستان ته د دې لپاره راغلي چې واقعیتونه ومومي او زیاته کړې یې ده: «دا چې موږ دلته یو، په دې دلالت کوي چې په خپلو سترګو واقعیتونه لیدل غواړو؛ نه د نورو له سترګو او دا چې نظرونه به د بېلابېلو اړخونو اورو، خو په پای کې به پرېکړه په خپلواکه توګه او د واقعیتونو په رڼا کې کوو». دغه راز نوموړي ډاډ ورکړی، چې د اسلامي همکاریو سازمان به له بېلا بېلو لارو د افغانستان ملاتړ ته دوام ورکړي. بل خوا د بهرنیو چارو وزیر مولوي امیر خان متقي ویلي، په هېواد کې یې ځمکني واقعیتونه له هغو ښېل دي، چې په ځینو بهرنیو رسنیو کې ښودل کېږي. ښاغلي متقي هیله ښودلې، چې په رسنیو کې د خپرېدونکي انځور پر ځای ځمکني واقعیتونو ته وکتل شي او د څو لسیزو جګړو له امله د نړیوالو په ذهن کې د جوړ شوي انځور بدلول یوازې د خپلو سترګو لیدلي وضعیت له لارې شوني دي. د یادونې وړ ده، چې د اسلامي همکاریو سازمان چارواکي وخت ناوخته افغانستان ته راځي او په هر ځل سفر کې د مرستې کولو ژمنه نوې کوي خو افغان مشران یوازې ژمنې کافي نه بولي او هیله ښکندوي چې دغه سازمان دې له اسلامي امارت سره له نږدې د ستونزو په حل کې ونډه واخلي. د سیاسي کارپوهانو له نظره هم څرګندېږي، چې که څه هم د اسلامي همکاریو سازمان کولی شي افغانستان په نړیوال نظم کې ادغام کړي خو په دې اړه یې لازم کار نه دی کړی. سیاسي شنونکي فضل الرحمان اوریا په دې اړه شریعت ورځپاڼې ته وویل: «دا سازمان هغه ظرفیتونه لري چې افغانستان په نړیوال نظم کې ادغام کړي او په اسلامي او غیر اسلامي نړۍ کې ور ته لوړ ځای جوړ کړي، خو د افغانستان په تړاو دغه سازمان خپله دنده سمه سر ته نه ده رسولې». د ده په باور، د افغانستان حکومت هم په دې نه دی بریالی شوی چې د دغه سازمان له ورتیاوو اعظمي ګټه اوچته کړي. ښاغلي اوریا ټینګار کړی، چې د اسلامي همکاریو سازمان ته په کار ده څو د خپل منشور مطابق د افغانستان او افغان ولس پر وړاندې خپل مسئولیت سر ته ورسوي. دا په داسې حال کې ده، چې د اسلامي امارت مرکزي ویاند ذبیح الله مجاهد په روان کال کې د یاد سازمان د ۷٥مې غونډې سره هم مهاله ویلي وو، چې د اسلامي همکاریو سازمان چارواکي دې د ژمنو پر ځای له نږدې د اسلامي امارت له حکومت سره کار وکړي او د بانکدارۍ په سیستم او یا د سازمان اړوند نورو پروژو په برخه کې دې مرسته وکړي.

نذیرمنیب

## د کثافاتو بیا کارونې لپاره له شرکتونو ...

مختلفو ناحیو کې کار کوي.

ښاغلی بارکزی دا ستونزې هم د کابل ښار غیر پلاني وده ښیي: زموږ اساسي ستونزه په غیرپلاني سیمو کې ده او په غیر پلاني سیمو کې د کثافتو راټولولو ستونزې زیاتې وي.

نوموړي زیاته کړه چې د کثافاتو بیا استعمال سیستم ته مو پام دی او له ځینو شرکتونو سره پرې خبرې روانې دي: د کثافاتو ریسایکل سیستم هم موږ په نظر کې لرو، مختلف شرکتونه راغلي، تماسونه او مکالمات ورسره لرو، چې نتیجې ته ورسېږو، نو خلکو ته به یې اعلان کړو.

باور دا دی که ښاروالۍ له اړوندو شرکتونو سره موثرې همکارۍ ته ورسېږي، نو دا به د ښار د پاکوالي، د طبیعي سرچینو د ساتنې او د خلکو د ښه ژوندانه سبب شي. دا ډول پروژې د حکومت، خصوصي سکتور او عامو خلکو ګډې همکارۍ ته اړتیا لري، ترڅو کابل ښار یو پاک، زرغون او پر مختللې بڼه خپله کړي.

تاج محمد بهار

## د یهودي اسیرانو له خولې ...

اسیرانو د ښه چلن او له ناوړه چارو ځان ساتلو سپارښتنه کوي، نو ځکه ډېره هڅه کوي چې په دغسې خطرناکو شیطاني لومو کې ونه نښلي.

حقیقت دادی چې د یو ډېر شدید دښمن د افرادو له خولې د اسلام سپېڅلي دین پر مزایاو او د الله تعالی په لار کې د مخلصو مجاهدینو پر حقانیت او غوره اخلاقو دا ډول څرګند شهادت، یقیناً یو ډېر پوخ او مستند دلیل دی او باید چې د اسلام ټول دښمنان له دغه ډول شواهدو پوره درس و عبرت واخلي. البته دغه ډول پېښې یوازې فلسطین پورې ځانګړې نه دي، بلکې ټولو نړیوالو ته معلومه ده چې افغانستان کې هم دې ته ورته شواهد لیدل شوي، د مثال په ډول د «ایوان ریډلي» په نامه بریتانوۍ خبریاله چې فقط لس ورځې یې د اسلامي امارت مجاهدینو سره په اسارت کې تېرې کړې، بیا مسلمانه او خپل ډېر خاطرات یې ولیکل. دغه راز یو بل استرالیایي استاد چې له مجاهدینو سره اسیر او تبادله کې ازاد شو، هم څه موده وروسته مسلمان او پر ځان یې «جبرئیل عمر» نوم کېښود، نوموړی تقریباً یوه میاشت مخکې کابل کې وفات او هم دلته خښ کړای شو. دا ټول واقعات زموږ د خپلو منافقینو لپاره کافي او شافي دلایل دي او باید چې قناعت پرې وکړي.

Shariat Daily

**Shariat**
**Published by**
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

**شریعت**
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Wednesday 19 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 687




## مصر د غزې د بیارغونې لپاره بدیله تګلاره وړاندې کوي

مصر د غزې تړانګې د بیارغونې لپاره یو داسې تګلاره وړاندې کوي، چې فلسطینیان د خپلې خاورې پرېښودو ته اړ نه شي.
د مصر د الاحرام دولتي ورځپاڼې د راپور له مخې، دغه حکومت د غزې په خاوره کې لومړی درې باامنه سیمې رامنځته کوي، چې فلسطینیان په کې مېشت شي او له هغې وروسته به د غزې د ورانو شویو سیمو په بیا رغونې پیل وکړي. د مصر حکومت د غزې لپاره دغه تګلاره په داسې مهال وړاندې کوي، چې د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ څو اوونی وړاندې ویلي وو، چې فلسطینیان دې له غزې ووځي؛ تر څو دی د غزې تړانګه بیا ورغوي.



## د کییف پر برخلیک د مسکو او واشنګټن خبرې

رسنیو خبر ورکړی، چې د ریاض په کوربتوب الدرعیه مانۍ کې د اوکراین جګړې په اړه د امریکا او روسیې بهرنیو چارو وزیرانو غونډه پیل شوې ده.
العربیه خبري شبکې ویلي، د امریکا بهرنیو چارو وزیر مارکو روبیو او روسیې سیال یې سرګې لاوروف چې تېره ورځ د سعودي عربستان پلازمېنې ریاض ته تللي په دې غونډه کې مهمې خبرې اترې ولري.
دغه خبرې چې د اوکراین له شتون په پرته د روسیې او امریکا ترمنځ پیل شوې سرګي لاوروف مهمې بللې دي.
دغه خبرې داسې مهال پیلېږي چې له دې وړاندې د اوکراین ولسمشر ویلادیمیر زیلنسکي ویلي وو، دغو خبرو کې برخه نه اخلي او پایلې یې هم ورته د منلو وړ نه دي. زیلنسکي د دوی له ګډون پرته هر ډول ترسره کېدونکې خبرې به بې پایلې بللې دي.



## نیروهای اسرائیلی از خاک لبنان خارج شده اند

مقام های لبنانی گزارش داده اند که نیروهای اسرائیلی به جز از ۵ نقطه از خاک لبنان خارج شده است. این عمل به عنوان بخشی از توافق آتش بس میان اسرائیل و لبنان صورت گرفته است . خبرگزاری فرانسه به نقل از مقام های لبنانی گزارش داده که ارتش لبنان به دلیل موجودیت مواد منفجره به این مناطق نرفته اند ، اما خاطر نشان کرد که نیروهای اسرائیلی از مناطق مرزی به جز ۵ منطقه بیرون شده اند.
در توافق آتش‌بس میان اسرائیل و لبنان که با میانجیگری امریکا و فرانسه بدست آمد ارتش اسرائیل باید از مناطق مرزی لبنان بیرون شوند و کنترول این منطقه را ارتش لبنان به عهده می‌گیرد.



سرپرست وزارت صحت عامه:

# پالیسی جدید ملی صحی راه را برای خودکفایی سیستم صحت باز خواهد کرد





مولوی نورجلال جلالی، سرپرست وزارت صحت عامه در دیدار با تاکایوشی کورمایا گفته، پالیسی جدید ملی صحی، راه را برای خودکفایی سیستم صحت باز خواهد کرد.
به گفته سرپرست وزارت صحت عامه، دیدار سرپرست این وزارت و سفیر جاپان به هدف تداوم و انکشاف همکاری فعلی در بخش صحت دیدار کرده‌اند.
سرپرست وزارت صحت عامه در مورد پالیسی ملی جدید گفته است: این پالیسی هماهنگی بیشتری بین شرکای کاری در بخش صحت ایجاد خواهد کرد، از تأخیرها و هزینه‌های بی ... ص۳

## د کندز ښار او شبرغان بندر ترمنځ برېښنا فعاله شوې



د کندوز د برېښنا ریاست مسوولین وايي، چې د شبرغان سوداګرېز بندر څخه تر کندوز ښاره پورې د ۸۰ میلیونه افغانیو په لګښت د ۱۱۰ کیلوولټه برېښنا مزي د بیارغونې چارې بشپړې شوې دي. د افغانستان د برېښنا شرکت رییس ... ۳مخ

## لوی‌درستیز وزارت دفاع ملی از قوماندانی قوای هوایی و مدافعه هوایی دیدن کرد

وزارت دفاع ملی می‌گوید، قاری محمد فصیح‌الدین فطرت، لوی‌درستیز این وزارت از قوماندانی قوای هوایی و مدافعه هوایی اردوی اسلامی و ملی افغانستان دیدن کرده است. به گفته وزارت دفاع ملی، آقای فطرت در این دیدار که ملا عبدالغفار محمدی، قوماندان عمومی قوای هوایی و مدافعه هوایی نیز حضور داشت، از جریان ترمیم هلیکوپترهای Mi17 نظارت بعمل آورد. در خبرنامه آمده که لوی‌درستیز وزارت دفاع ملی تلاش‌ها و زحمات منسوبین و تخنیکران قوای هوایی کشور را ستایش کرده است. این در حالی است که پس از حاکمیت امارت اسلامی منسوبین و تخنیکران قوای هوایی کشور توانسته‌اند که هلیکوپترهای تخریب‌شده و بازمانده از فعالیت را ترمیم و آماده پرواز سازند.



## ننګرهار ښاروالۍ ۵۳۳ میلیونه افغانۍ راټولې کړې

د جلال اباد ښاروالۍ مسئولین وايي، چې د روان ۱۴۰۳ کال په تېرو لسو میاشتو کې یې ۵۳۳ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي. جلال اباد ښاروالۍ د عوایدو د راټولولو رییس عبدالواسع ویلي، چې د جلال اباد ښاروالۍ د روان ۱۴۰۳ کال په تېرو ۱۰ میاشتو کې یې له بېلابېلو برخو څخه ۵۳۳ میلیونه افغانۍ عواید راټول او د دولت خزانې ته یې سپارلي دي. هغه زیاته کړې چې د یادو عوایدو له جملې څخه ۵۰ میلیونه افغانۍ د باقیداري، ۳۶ میلیونه افغانۍ د جوازونو او پاتې عواید د ملکیتونو د کرایو له لارې راټول کړل شوي دي.



## میدان وردګو کې ټرافیکي پېښې مرګ ژوبله اړولې

د میدان وردګو د امنیې قومندانۍ مسئولین وايي چې په سید اباد ولسوالۍ کې د کابل - کندهار پر لویه په دوو جلا جلا ترافیکي پېښو کې ۶ تنو ته مرګ ژوبله اوښتې ده. د یاد ولایت د امنیې قومندانۍ ویاند یوسف اسرار وايي، چې لومړۍ پېښه د سید اباد ولسوالۍ په هفت اسیا شابۍ سیمه کې د کمپک ډوله موټر او ټراکتور ترمنځ شوې، چې له امله یې ۵ تنه ټپیان شوي دي. نوموړي زیاته کړه، چې دویمه پېښه د سیداباد ولسوالۍ په سالارو سیمه کې د خاور ډوله موټر او موټرسایکل ترمنځ شوې چې موټر سایکل چلونکی په کې سخت ټپي شوی دی. د پېښو ټپیان روغتیایي مرکزونو ته لېږدول شوي دي.



## د عمري قول‌اردو د قوماندانۍ د سړک جوړولو چارې پیل شوې

د ۲۱۷ عمري قول‌اردو د تسهیلاتو امریت له لوري د قوماندانۍ مخې د سړک جوړولو چارې پیل شوې.
یادې قول‌اردو ویلي، چې د دغه سړک چارې د دې قول‌اردو د رهبرۍ په هدایت اړوند د تسهیلاتو امر اسدالله ابوذر په همکارۍ پیل شوې دي. د ۲۱۷ عمري قول‌اردو د خبرپاڼې له مخې، یاد سړک د ۵۰ متره په اوږدوالي په اساسي او معیاري توګه به ډېر ژر ګټې اخیستو ته وسپارل شي.




## کشف‌وضبط یک مقدار مهمات در کندهار



مقام‌های امنیتی ولایت کندهار از کشف‌وضبط مقداری مهمات در مربوطات این ولایت خبر می‌دهند.
به گفته دفتر مطبوعاتی قوماندانی امنیه ولایت کندهار مهمات کشف‌وضبط‌شده شامل ۴۴ فیر مرمی گایز، ۶ دانه مرمی دهشکه و ۵ فیر مرمی هاوان است.
در خبرنامه آمده که مهمات یادشده از مربوطات حوزه ششم امنیتی شهر کندهار بدست آمده است.
قوماندان امنیه ولایت کندهار افزوده که مهمات یادشده در نتیجه عملیات کشفی بدست نیروهای امنیتی افتاده است.
این در حالی است که تلاش‌های مجاهدین امارت اسلامی جهت استحکام پایه‌های امنیتی در کشور ادامه دارد.